# د طالبانو بیا راتګ

## دخلګو اندېښنې، رازونه او حقیقتونه

مؤلف: مولوي غلام الله عَمرو



## فهرست

د کایناتو د مخلوقاتو د رب په نامه په لیکلو شروع کوم

**بسم الله الرحمن الرحیم**

راتلونکو صفحو کې چې تاسو څه لولی، زه پوره ضمانت کوم، چې حق به وي، زما، ستاسو، ستاسو د کورنیو، د طالبانو د نظام او د افغانستان د راتلونکي په ګټه به وي.

**هغه قلم دي مات شي، چې د الله تعالی ناخوښه یا و مخلوقاتو ته زیان رسونکي شیان په لیکل کیږي. ما د خپل رب نه غوښتنه وکړه: "یا الله! که به زه په دې کتاب کې د دین، هیواد یا خلکو په تاوان څه لیکم، نو توفیق یې مه راکوې. امین"**

اوس نو که دا کوچنوټی کتاب و تاسو ته ورسید، نو زما دعا قبوله شوې ده. ماته، ځانته، خپلې کورنۍ ته او دا درانه، ویاړلي، تاریخي افغنستان ته دعا وکړئ. الله سبحانه و تعالی مهربانه دئ، زموږ ځوریدلو، کړیدلو او مظلومو دعا به واوري او وطن به جنت کړي.

**زما دي د کایناتو په سپیځلي رب قسم وي، چې دا کتاب به ستاسو ذهن ارام کړي او زړه ته به مو ډاډ درکړي. په دې شرط که تاسو د ضدیت عینکې له سترګو لیرې، د عقدې او دښمنی فکر له ذهنه و باسی او زړه مو ورته خالص کړئ.**

را به سم ددې لیکنې اصلي هدف ته، دا لیکنه مي ددې ځو موخو په نیت وکړل؛ طالبان څوک دي او څنګه راغلل؟ د چا خبره به مني؟ په چا پورې به اړه لري او دې ته ورته زموږ د افغانانو نورې ډېرې اندېښنې او خبرې.

د کتاب پاڼه واړوئ، مخته لاړ شئ او ستونزې مو حل کړای

په اسلامي مینه
مولوي غلام الله عمرو
چهار شنبه ۱۰/سنبله/۱۴۰۰
۱/سپتمبر/۲۰۲۱

## له باغونو تر وزارتونو؛ د طالبانو پېژندګلوي او بيا را څرګندېدل

له کله نه چې د حکومت په شروع کې د افغانستان په ځينو سيمو کې خال خال ټک اورېدل کېدی، نو افغان حکومت او امريکا د طالب شتون و منی او دا يې وويل، چې طالبان پيدا شوي.

موږ ته ويل کېدل، چې طالبان پنجاپيان دي، د پاکستان په لمسون هر کار کوي، دوست او دښمن نه پېژني؛ خلک د څټ لخوا حلالوي، و مکتب ته د تلونکو نجونو پر مخ تېزاب پاشي او د موچي په تار انسانان پر خېټه غوټ پرې کوي.

وروسته معلومه شول، چې دا وحشتونه د استخباراتو او امريکايانو کار وو، غوښتل يې خلک او عسکر د طالبانو په مقابل کې احساساتيان کړي، خو دوی دې کې بريالي نه شول، ځکه طالبان د اولس له منځه را پورته شوي وه، طالبان د داغه ښار خلک وه. ټوله ورځ به يې دوکان کوی يا به يې کوم دفتر کې دنده اجرا کول ترڅنګ به يې د طالبانو ملګری وو او د امريکا په مقابل کې به يې جهاد کوی. دا خبره هغه وخت نوره هم ښه واضح او روښانه شول، چې کله طالبانو بيا ځلي افغانستان ونيوی، نو موږ په خپلو سترګو خپل کليوال، د بازار دوکانداران او قريبان د طالبانو په منځ کې وليدل. ايا زما ملګری زما د خور پر مخ تېزاب پاشي او که زما ورور د موچي په تار حلالوي؟

امريکايانو د افغان حکومت سره يوه ناکامه پاليسي جوړه کړل؛ د خلکو پر کورونو به ور اوښتل، افغانه مېرمن او خاوند به په خواږه خوب بيده وه د توپک په شپېلی به يې را ويښ کړل، زما د خور، مور او لور د کالو په بکسونو کې به ګرځېدل، زيره لرونکي به يې له ځمکي ورک کړل، خلک به يې ريګو کې ژوندي خښ کړل، مدرسې يې بدنام کړې، پر هر کونج به يې تلاښی کولې او، او...

مونږه به يې پنجابيان بللو، خو نن مونږه په خپل هيواد کې ناست ياستو، خو دوی پاکستان کې پناه اخيستې. عجبه نه ده؟

د خلکو احساسات نور را و پارېدل، خلکو نور هم د طالبانو لاس نيوى شروع کا. داسي مېرمني وې، چې خاوند به يې بايللى وو، اوس به يې و خپل ۱۲ کلن زوى ته د پلار د بهادرى او د ظالمانو د بې رحمى کيسي کولې، ترڅو زوى يې د امريکا او د هغوى له پلويانو څخه خپل غچ واخلي. داسي ميندي به وې دري زامن به يې بايللي وه ځلورم زوى به يې واستاوه، داسي ۷۰ کلن بوډاګان به وه، چې په ربړېدلو لاسو به يې د زوى و اولادو ته نفقه ګټل، خو ځوان مست زوى به يې جهاد ته لېږه.

له بلي خوا امريکا په لوى لاس د حکومت سپي او خاين چارواکي په فساد روږد کړل، بې حسابه پيسې به يې ورکولې، ادارو کي رشوت، فساد، فحشاء او هرڅه اوج ته ورسېدل.

امريکا پر نړيوالي ټولني د مرستي بږغ وکړ، هغوى هم په بې غمه زړه و افغانانو ته خپل مرستي شروع کړې، زياته برخه يې بيرته امريکايانو ايستل، هغه پاته پيسو باندي به لږ انکشافي کارونه کېدل او نوري پيسې به د فحشا لپاره کارول کېدې. ښه بېلګه يې خارجي مؤسسات وه، چې په هغو کي د ۴۰ سلنه ښځينه کارمندانو شتون خامخا شرط وو. دا ټولي ناغېړى، بې غورى، ناکامه پلانونه سره راجمع شول او خلک يې دې ته تشويق کړل، چې نور هم و طالبانو ته غېږه خلاص کړي. د خلکو مينه موږ په ښارونو کي وليدل، چې د طالبانو په راتګ سره خلکو جشنونه لمانځل.

### تېر به هېر کړو؛ بدو پسې به او به توى کړو

راسئ، يو ښايسته، ارامه زنده ګي جوړه کړو، زموږ يکي يو خداى بيخي مهربانه دئ، دا وطن به هم جوړ شي، دا خلک به هم ټول سم شي. که زه له تا، ته له ما او څوک له چا، يو له هغه بل نه ګيلې وکا، نو وطن به څوک جوړ کا؟
راسه! غاړه راکه، معافي به يو و بل ته وکړو. کومه انرژي چې اوس پر انتقاد او نيوکو مصرفه وو، دا به د هيواد لپاره مصرف کړو.

## طالبان څنګه خلک دي؟

طالبان عجب ځانګړني لري؛ دا سي ځانګړني، چي اوس وخت کي د نړۍ په نورو مشرانو، سیاسیونو او خلکو کي نه لیدل کیږي، راسئ یو څو یې درته ووایم. تاسو یې هم د سر او زړه په سترګو وګورئ، دا ځانګړني سل فیصده پکښي احساسولای شی:

**خاکساري:** له مشره تر کشره ټولو کي خاکساري ښکاري. مشران ئې ځان پسې شل موټره نه پسې کوي، یوازي یوه موټر کي روان وي هغه هم ضد مرمی نه وي. پر خاورو در سره کښیني او ساده وچه ډوډۍ درسره خوري.

**اطاعت:** عسکر او قومندانان یې سخت دښمنان وه، د طالبانو ورونه یې ورته وژلي وې، خو چي څنګه یې مشرانو عفوه وکړ، نو دوی هم دستي امر و منی، بیا یې له هیڅ کس څخه غچ نه دی اخیستی. حتی هغه عسکر یې هم غبږه کي ونیول، چي و طالب ته به یې شکنجې ورکولې. او تر ټولو زیات بیا ټول د الله اطاعت کوي.

**جنګي تاکتیک:** امریکا د ټولو مرین بحري ځواکونو، ټانګونو، او طیارو سره رانګا رنګ تاکتیکونه په کار واچول، خو دوی له ډېرو ساده تاکتیکونو سره د امریکا په ماته کي کار اخیستی.

**سربښندنه او استشهاد:** جالبه نه ده، چي څوک دي پر خپل خواره ځان پوري بم تړي او بیا دي یې چاودي؟ دا بیخي لوی غیرت ته اړتیا لري، تاسي یې په اړه یوازي فکر وکړی. د بدری ۳۱۳ ځواکونو د یوه طالب مرګه مې اوریدل، ویل موږ ټولو دا منلې، که همدا اوس امر وشي، نو موږ ځان پسې بم هم تړو. کله چي اخلاص او سربښندنه دونده ډېره سي، نو بیا خامخا یو طالب په یکي یوازي ځان د شلو کسانو سره جنګ کوای شي، ځکه له مرګه نه بیریږي.

**دیني پوهه:** مشران یې ټول لوی لوی دیني عالمان او شیخان دي، حتی ساده طالبان یې لا قاریان، حافظان او مولویان دي. د عصري زده کړو ماهرین هم خورا ډېر ورسره دي.

**ادب او فرهنګ:** ډېر لوی فرهنګیان دي؛ ښه نظم لیکي، ښه شعر وایي، ښه اوازونه یې دي. په راتګ سره یې په زابل او کندهار کي ښه مشاعرې جوړي کړې.

**بېره نه لرل:** تر خدای تعالی را کښېته له هيچا بېره نه لري، هو، هغه ځوک به ښځګه بېره ولري، چې په ځان پسې بم تړای شي او بيا چاودنه ورکوای شي. ټول جنګونه يې مخامخ کول او کوي.

**له پيسو او موقف سره مينه نه لرل:** هيڅ يو يې هم د لوړ موقف شوقي نه دئ. که يې او س د کابل والي ته ووايې، چې ورسه په خوست کې ساده د طالبانو د يو اطاق چوکيدار شه، نو هم هيڅ ستونزه نه لري.

**دلاوري:** له نه تندي، نه له لوږي او نه هم له دوښمنه بېرېدلي دي. کله چې ښار ته داخل شول، مو وليدل لڅي پښې وه. د دښتو، غرونو، لوږو او ژورو هيڅ پروا نه لري.

## د طالبانو حيرانونکی منظر

کله چې ښارونو ته داخل شول، نو رب جل شانه ته به پر سجده شول، په زوره زوره به يې ژړل.

دا د خاکسارۍ او د الله سره د مستقيم رابطې يو لوی ثبوت ده.

کله چې شپه کې امريکايان ټول له افغانستانه ووتل، سهار کې ټولو ولاياتو کې مشاعرې او لمانځ غوندې جوړې شوې. د کندهار د والي يو ويډيو ټولنيزو شبکو ته را ښکاره شول، چې تور زاړه بوټونه يې په پښو دي، مخکې تردې، چې خپلې خبرې شروع کړي سر يې خپل رب ته پر سجده کښېښود، د رب شکر يې ادا کړ.

**جالبه نه ده، مخکښيو به د امريکا، کاناډا، برطانيا ښخه مننه کول، خو طالبان د خپل رب ښخه مننه کوي.**

نه پوهېږم، چې موږ لا ولې راندې يو، لا ولې خپل رب ته نه تسليمېږو؟

## ایا موږ همدا نه غوښتل؟

پخوا به خلکو د نورو هیوادونو د وزیرانو، والیانو او ښاروالانو تصویرونه پر فیسبوک ښکته پورته کول، چي وګوره! زموږ هغي پسې شل موټرونه او سل ساتونکي پسې وي. نور هغه وخت لاړ، اوس به والي، وزیر، ښاروال او نور هرڅوک په یو ساده موټر کي سپرېږي.

و یو عادي ریاست ته به شل تلانبیاني وې، اوس بغیر له تلانبی ورشی.

له والي، ښاروال، او رئیسانو سره به نه پیدا کېدل، بیا به خلکو واسطې کولې، اوس بغیر له واسطې ورشی.

د لوړ پوړو چارواکو بچیان به هم په ضر مرمی موټر کي سپرېدل، ددې چارواکو اولادونه به ډېر عادي ګرځي.

قانون به قانون وي، قانون جوړنکی او عملي کونکی به هیڅوک قانون نه شي ماتولای. پخوا به قانون تر ټولو وړاندي خپله قانون جوړونکو مات کړ.

د هیواد نورو سیمو ته نه شوای تلای، که به هزاره ولایتونو ته تللو، نو بېرېدلو به، لاروکي به د غلو بېره هم وه. ختم شول، دا ټول ختم شول. اوس په خپل موټر کي په ټول هیواد کي په بیغمه زړه وګرځی. ښه سم وګرځئ. نورو ته زیان مه رسوی، تاسو ته به زیان و نه رسول سي.

**دا ټول زموږ خپلي غوښتني وې، موږ داسي هیواد او داسي چارواکي غوښتل.**

## اوس به څه کیږي؟

هیڅ به نه کیږي؛

- نور به نه د احمد شاه بابا توهین کیږي او نه به میرویس نیکه سپک ګڼل کیږي.
- نور به دولتي چوکۍ په پیسو نه خرڅیږي.
- نور به موږ پر پښو دریږو.
- که جنوبي ویتنام آزادي نه وای اخیستې، اوس به یې هیواد او هیواد وال غلامان وای. عیني که همدا اوس مونږه آزاد شوي نه وای، مونږه به غلامان وای.
- نور به مو کشران هلکان په عزت وي، خویندې به مو هم څوک نه تکلیفوي.
- نور به غلا، رشوت، چور او چپاول نه وي.
- نور به زموږ په پریکړو، داخلي کارونو او ورځني ژوند کې امریکایان او نور لاس نه وهي.
- نور به افغان پاسپورټ ارزښت پیدا کوي.
- نور به د فحشا ټغر ټول وي.
- نور به چارواکي اسلامپال او و اسلامی ارزښتونو ته ژمن خلک وي.
- نور موږ پر ځان بسیا کیږو، د پاکستان او ایران و هرڅه ته به محتاج نه یو.
- نور به دلته په اسلامی روحیه سمبال کدرونه روزل کیږي.

دا شل کاله مو مخکني چارواکي او ډیموکراسي امتحان کړل؛ ستړي ژوند وو. راسئ، فقط لس کاله اسلامي نظام او اوسني چارواکي امتحان کړو.

که دوی هم خراب وه، نو زه مو د دوی په وړاندې مبارزه کې ملګری یم. دا زما ستاسو او د اللّٰه تعالی سره وعده ده.

## امریکا ماته شول او که په خپله خوښه ووتل؟

خلک دوو برخو ته وېشلي؛ څوک وای امریکا ماته شول او څوک وای په خپله خوښه ووتل.

دا موضوع لږ ژور څېړلو ته اړتیا لري. خو لومړی پردې بحث کول پکار دي، چې ایا د امریکا په وړاندي باید وسله پورته شوې وای او که یا؟

موږ د خپل ژوند په اوږدو کي له ابتداء تر انتهاء و علماؤ او ملایانو ته اړتیا لرو. فکر وکاوی! مونږه غوږ کي ملا اذان کوي، دا د رسول ﷺ سنت ده. له نابلدي ښځي سره نزدېکت حرام ده، خو که هغه ښځه ملاصاحب درته نکاح کړي، نو بیا ستونزه نشته. جنازه مو تر هغو معطل کړې وي، ترسو ملاصاحب را ورسېږي. همداسي نو د ټول ژوند شیونه در واله.

کله چي امریکا پر افغانستان حمله وکړل، نو علماؤ په اتفاق سره د جهاد اعلان وکړ. د نړی په ځینو هیوادو کي د علماؤ ټولنو وویل، چي افغانستان کي جهاد روا نه ده، خو هیچا هم و دې ته وه نه کتلی، چي زمونږ خویندي بې عزته کیږي، ځوانان وژل کیږي، د شپي دوې بجي مو کورته امریکایي عسکر د توپکونو سره راځي، ښځو کي مو نارینه تلاښي کوي، ویني بهیږي، شراب عامیږي، د عیسویت تبلیغ کیږي او...

د افغانستان علماؤ د هیچا پر فتواګانو غوږ و نه نیو، و جهاد ته یې ادامه ورکوله. شل کاله وروسته دا ورځ راغلل، چي امریکایان مات شول او ووتل او طالبانو خپل سپین بیرغ ورپاوه. امریکا د افغانستا ورانول نه غوښتل، د افغانستان غلامي یې غوښتل.

اوس به راشم دې تحلیل ته چي ایا مونږه هیواد کي امریکا ماته شول او که نه؟

د ماتي ځیني علامې و نښانې شته دي:

**لومړی.** افغانستان ته د امریکا راتګ یوازي او یوازي د یوې موخي لپاره وه؛ غوښتل یې د همېشه لپاره همدا غلته پاته شي. افغانان غلام کړي. حتی و حکومت ته یې هم دا ډاډ

ورکړې وو. له حامد کرزي څخه یو خبریال د امریکا پوښتنه کوي، کرزی په ډاډ سره ورته وایي: امریکا هیڅکله افغانستان کي ماته نه خوري؛ امریکا به ۵۰ کاله نور هم همدا غلته وي. خو امریکا و نه کولای شوای، چې له ښارونو ورها خوا بل ځای و اوسی. ولسوالی ټول له طالبانو سره وې. ډېر لږ وخت یې پر نیم افغانستان حکومت وکړ او روسته یې پلانونه ټول ناکام شول.

**دوهم.** کله چې کوم هیواد بله هیواد کي ماتیږي، نو و وحشت ته لاس اچوي، په ویتنام کي امریکا، په هند کي انګلیسانو او په افغانستان کي روسانو په خپلو اخرو شپو کي و زیات وحشت ته لاس واچاوه. دا ځل هم امریکا همدا کار وکړ. خو خبره نه وه، چې د افغانستان په جغرافیه کي یوازي افغانان جنګ کولای شي، نور څوک نه.

**دریېم.** له کوم هیواد څخه که اشغالګر هیواد په بریا وځي، نو بیا باید تشریفات ورته ونیول شي، دا د نړیوالو اړیکو اصول دي او که بغیر له تشریفاتو په پټه ووتل، نو شکست یې خوړلی ده. د ۲۰۲۱ کال له شروع نه امریکایانو خپله ماته منلې او له افغانستانه یې وتل شروع کړي دي. اول د ښوراو له اډې څخه د شپې په داسي حال کي ووتل، چې د افغانستان برحاله حکومت هم په خبر نه وو. سهار په خبر شول چې زمونږه امریکایي ملګري وتي دي. بیا د کندهار له میدانه ووتل، بیا د کیګو بیس (ملا صاحب سرای) څخه همداسي ووتل. کوم تشریفات نه دي ورته نیول شوي، په پټه ووتل.

**څلورم.** د ماتي بل لامل و هغه هیواد ته تاوان رسول دي. کله چې امریکایان له افغانستانه وتل نو د افغانانو شتمني یې ټول تخریب کړل، اطاقونه، جوړي لاري، او طیارې یې خرابي کړې. ځکه نور یې په جنګ وس نه رسېده، نو مالي تاوان یې راته ورساوه.

**پنځم.** که طالبان له منځه تللي وای؛ دا به امریکا ګټه وای. که طالبان په سوله و کابل ته راغلي وای؛ معنی دا جنګ ګټونکی او بایلونکی نه درلود. اوس ساعت چپه و څرخېدی، طالبان بغیر له سولي و کابل ته ورسېدل، چې دا مخامخ د امریکا ماته ده.

شپېږم. که امریکا ماته نه وای، نو بیا یې ولې له طالبانو سره نرمی ته غاړه ایښودل او ولې یې د وحه کې توافقنامه امضاء کول؟ دا د ماتې بله لویه نښه وله، ترسو ځان له جنګ او مرګ وژغوري.

اووم. د ۲۰۲۰ د ډیسمبر په میاشت کې لا انجلس ټایمز وویل، امریکا له طالبانو سره لاسلیک وکړ، ترڅو له جنګه ځان و باسي او یوازې افغان ځواکونه و جنګ ته پرېږدي. دا د امریکا لویه ماته وه، چې ځان یې پټ او بل څوک یې جنګ ته ټېل وهل.

## امریکا په افغانستان کې پر یوه وخت درې ماتې وخوړې

امریکا په شلو کالو کې په افغانستان کې درې ماتې وخوړلې؛ هره یوه به یې درته واضح کړو:

### لومړی ماته

مخامخ یې له طالبانو سره په جنګ کې ماته وخوړل، زرګونه عسکر یې ووژل شول او له افغنستانه یې پښې سپکې کړې. داچې په خپله خوښه ولاړل، دا هم د ماتې یو ډول دئ. ځکه جنګ یې تر وس او توان پورته شو.

### دوهمه ماته

د داسې حکومت بنیاد یې کېښېښود، چې ریښې یې له فساد، خیانت او درغلی څخه جوړې وې. او د ټول حکومت تکیه یوازې او یوازې پر امریکا وه، چې د امریکا پایې په افغنستان کې طالبانو و نړولې، پر درواغو ولاړ حکومت هم را و نړېد. حتی په شل کاله جوړ شوی حکومت په ۱۱ ورځې و نړېد. افسوس.

### درییمه ماته

دا ډېره جالبه ماته وه. دا کوچنی درییم نړیوال جنګ وو. کله چې په ۲۰۰۳ او ۲۰۰۴ کې طالبان رابښکاره شول، نو د امریکا سره یې شاوخوا ۵۰ هیوادونه ملګري راغلل. بغیر له اول او دوهم نړیوالو جنګونو څخه هیڅکله هم په یوه هیواد کې د جنګ لپاره ۵۰ هیوادونه نه دي را جمع شوي. کله چې نورو هیوادونو د امریکا ماته په سترګو ولیدل، نو هغوی مخکې له مخکې شکست و مانه او افغانستان یې پرېښود.

## ويتنام او افغانستان؛ د يوې ډرامې دوه ځلي تکرار

د کندهار پوهنتون استاد او په نړيوالو اړيکو کې ماستر ممتازالدين ممتاز د امريکا ماته په جنوبي ويتنام او افغانستان کې سره پرتله کړې ده، دا پرتله يې د "ويتنام از دين بين فو، تا سايګون" کتاب او د افغانستان و موجوده حالاتو ته په کتلو کړې ده. پرتله دا سې ده:

**يو:** له جنوبي ويتنام څخه په تېښته د امريکايانو وتل هغونده ډېر شرمناکه نه وه، لکه د افغانستان څخه. (مونږه وليدل)

**دوه:** د سايګون (د جنوبي ويتنام پايتخت) تر سقوط وروسته ويت کنګ د جنوبي ويتنام ټول عسکر تر تيغ تېر کړل، خو په افغانستان کې د هغه برخلاف طالبانو ټولو ته عمومي عفوه اعلان کړل. (دا احسان يې بايد و منل شي)

**درې:** د شمالي او جنوبي ويتنام تر يو ځای والي وروسته کوم مقاومت شتون نه درلود، مګر دلته ځيني خاين او جاه طلبه عناصر لا هم د مقاومت نارې وهي چې بايد په هر حالت کې محوه سي. (طالبان بايد هغوی ته سبق ورکړي)

**څلور:** جنوبي ويتنام کې هم وزارتونه او منصبونه خرڅېدل او تر اولسمشره پوري ټولو په غلاوو کې ونډه درلوده. په افغانستان کې هم دا سي کېدل.

**پنځه:** هغه مهال رسنيو د واقعيت خلاف د ويت کنګ پر ضد منفي تبليغات کول او هغوی ئې د چين او شوروي لاسپوڅي بلل او دلته هم د واقعيت خلاف د طالبانو پر ضد منفي تبليغات د مبالغې تر کچې کېدل او د پنجابي پېغورونه ورکول کيږي.

#شپږ: د جنوبي ويتنام اولسمشر په پای کې له يو عالم زرو (طلا) او ډالرو سره وتښتېدی او افغانستان کې هم د ډالرو عيني موضوع پېښه سوه

**راسئ، حقيقتونه درک کړو، ړانده قضاوتونه و نه کړو**
**ايا د هغه جمهوريت لار تعقيب کړو، چې هر څه په پيسو وه، عزت له خاورو سره خاوري وو**

## دا هغه طالبان نه دي

هر ولايت کي چي به خلک راکښېنستل نو سهار ته به طالبانو درست ښار نيولی وو، ښار کي به ساده، ږيرور، لنګوټې پر سر طالبان ګرځېدل. چي د خدای حق ځله ويايو، نو موږ ته دا کلونه کلونه ويل سوي وه، چي طالبان بغير له کومه دليله وژل کوي، زيږه او توند خلک دي، رحم نه لري، پښتو يې نه ده زده په پنجابي خبري کوي. نو ځکه په اولو څو ورځو کي تېوله ورځ د دوی پر شا وخوا و ګرځېدم، له ليري او نژدې مي و څارل، دا لاندي پايلي ته ورسېدم:

- خلک بېرېدل، چي دا به پنجابيان وي، خو زموږ خپل پښتانه ول.
- وحشي طبيعته او توند به وي، خو د ښار ځوانانو سره يې خندل؛ غېږي يې ورکولې، ماشومان به هم پر را څرخېدلي وله.
- فاسد چارواکي و تښتېدل، زرګونه عسکر يې پرېښودل، خو طالبانو خپل شل کلن دښمن ته عفوه وکړل.
- موږ چي ول خلک به نا اميده سي، خو خلکو له دوی څخه لوی اميد ونه لرل؛ چا د برق غوښتنه کول، چا د لويو لارو د خلاصولو او چا بيا نور څه غوښتل.
- موږ چي ويل د دوی په راتګ به خاموشي خپره شي، خو خلک يې استقبال ته را وتلل، د هغوی سره يې بيرغ په لاس کي اخيستی وو.
- که به موټر کي ښځي له چا سره وې، نو د شرعي او پښتني حيا په خاطر به يې سترګي کښته کړې.
- دا شل کاله موږ ته ويل سوي وه، چي طالبان د پنجاب ملېشه ده، ښه پيسي ورته را رواني دي، خو دوی ساده غريب خلک وه، له جيب څخه به يې ډوډی را وکښل يا به يې له نانوايي څخه نيم ډوډی واخيست، وچه به يې خوړل.

> يو شي ته خاص متوجه سوی يم، تاسو هم متوجه سئ:
> د نظام مخالفين اکثره زاړه رشوت خواره، ظالمان يا هم سيکولران او يا له دين څخه ناخبره خلک دي.

## يو څو نوري اړيني خبري

دلته غواړم پر يو څو اړينو خبرو باندی بحث وکړم، تاسو يې راسره ولولۍ، ښه به پوی شی. ان شاء الله

## طالبان بې وفا نه دي؛ تر مرګه ملګري کوي

ايا تاسو ته د غيرتمن ملګري ملګرتيا خوند نه درکوي؟
کله چې روسان مات شول، نو د دوستم، حکمتيار، مسعود، رباني او نورو مشرانو په هيواد کي غوبل جوړ کړ، کله چې طالبان راغلل، نو ټول مشران و تښتېدل او عسکر يې پرېښودل. کله چې دوهم ځل بيا طالبان راغلل، د هيواد لوړ پوړي ټول و تښتېدل، خو کشران يې يوازي پرېښودل. حتی د حوزو قومندانانو لا هم خپل عسکر پرېښودل.
طالبان داسي نه دي، کله چې يې اول ځل افغانستان پرېښود هم يې خپل ملګري او لاريان نه دي پرېښودلي. طالبانو پر اسلام سختي منګولي ښخي کړي دي، نو ځکه پر وعده وفا کونکي دي. هيڅکله به موږ په بده ورځ پرېنږدي.

## طالبان ظالمان نه دي

ايا قومندانانو د خلکو اولادونه په زور نه بيول؟ ايا ستاسو ښځه يې په کاروبار کي ججه نه اخيستل؟ ايا ستاسي سره ظلم نه کېدی؟
و مو نه ليدل، چې طالبانو څومره خلک معاف کړل. دښمن يې په امن تر کوره و نه رسوی؟
طالبان د الله تعالی څخه بيرېږي. هيڅکله به ظلم و نه کا.

## تاسو او دين دواړو ته به طالبان عزت و بخښي

ما تصويرونه ليدلي، چې عبدالله عبدالله جماعتونه ورکوي، ما تصويرونه ليدلي، چې د کندهار د ولايتي شورا لوطی او فاسد مشر سيد جان خاکريزوال جماعتونه ورکوي. خو اوس الحمدلله ټول چارواکي د علم ښتنان دي. د عالمانو سره به موږ او زموږ دين دواړه په عزت وي.

## راتلونکي کي به څه کيږي؟

ساده خبره ده، هیواد به امن وي، برېښنا به جوړه شي، فساد به له منځه لاړ شي، خلک به د هیواد هر ګوټ ته تلای شي، نوره نړۍ به موږ په رسمیت و پېژني او د جنیوا د کانفراس منل شوي پیسې به افغانستان ته ورکول شي.

## ایا طالبان په یوه ورځ وطن جوړ کړي؟

تاسي چې له طالبانو سه څه غواړی، نو په اوله روځ یې غواړی؟

ستاسو نه دي په یاد، که به خلکو د حکومت پر بې عدالتی نیوکه وکړل نو ویل به یې د حکومت تر اوسه شل کاله کیږي په کراره به سم شي، منګر د طالبانو سه بیا په اوله ورځ عدالت او انصاف غواړی.

حکومت په هر ولایت کي خپل عسکر یوازي پربښودل منګر طالب خپل عسکر څه کوې. د حکومت د عسکرو سره یې لا ښه وکړل

۱۸ ولایتونه ونیول شول منګر بیا هم حکومت د دروا غو وعدې ورکولې چې موږ به هر څه سم کړو، منګر د طالبانو مېړاني او پښتونولی او کلک ایمان ته بیا خلک نه ګوري.

چې تر کابله ورسېدل، نو زه په دې باوریم، چې خامخا به وطن هم ښه ښایسته کاندي.

## عوام و چاته زیان رسوي؟

یو څه خلک لګیا دي د طالبانو له عفوي څخه غلطه استفاده کوي، بېرېږم طالب بیا و هغه خپل پخواني حالت ته و نه ګرځي، بیا به د طالب لرګی او د عوامو څټ وي.

ښه خبره ده، که موږ هم خپل ژوند او روزګار ته بیرته عادي ادامه ورکړو، که مو د نظام حمایت او لاس نیوی په وسه نه وي، نو ستونزي ورته پیښې نه کړو، الحمدلله هغه وخت ولاړ، چې ښایسته زوی مو یوازي دوکان نه شوای کولای، لور مو یوازي مکتب ته نه شوای تلای، کاروبار مو نه شوای کولای، ځکه ججه را نه غوښتل کېدل.

خدای ته به شکر وکاږو، چې همدوی وطن راته جوړ کړي، موږ د وطن جوړېدل غواړو له دې سره مو کار نشته، چې چا راته جوړ کړ.

ربه، زموږ کور او زموږ هیواد نور هم پرمختللی او په امن کړې. آمین

## د بیرغ مسئله کوچنۍ نه، ډېره ژوره ده

قناعت به کړو

زما دوې خویندې او یو ورور دئ، دوی کوښښ کوي، چې د ډوډۍ پر وخت زما د پلار بغلونو ته کښېني، هر وخت به یې جنجال وو. بیا مو په کور کې داسې یو قانون ورته جوړ کړ، چې هرچا که د ښوونځی ټول درسونه زده کړي وه او کورنۍ دنده یې پوره کړې وه، نو هغه به د پلار و بغلونو ته کښېني. اوس هغه ځوک کښېني، چې ګټونکی وي.

را به سم د بیرغ موضوع ته؛

طالبان نه د کرزي او نه هم د اشرف غني جمهوریت دئ، چې په یوه، یا سل، یا زر یا میلیون رایو راغلی وي. طالبانو شل کاله سپین بیرغ تر سر تړلی وو، قرباني یې ورکړې، زحمتونه یې وګښل، و درې رنګه والا بیرغ ته یې شکست ورکړل او بیا تر سپین بیرغ لاندې و ارګ ته ورسېدل. نه د چا په رایه راغلي او نه د چا په مرسته، نو بیا ستاسې خبره ولې و مني؟ چې زړه یې وي هغه بیرغ دې ودروي. ګټونکي دي او پرېکړې د ګټونکو لاس کې وي.

دا شل کاله د درې رنګه بیرغ د پلویانو لخوا پر سپین بیرغ ټکان کېدل په دفاع کې یې طالبان شهیدېدل. ایا طالبان دا هېر کړي؟ که یا موږ سر ناخلاصه خلک یاستو؟

کله چې د طالبانو رژیم واوښت، که به د چا سره سپین بیرغ ولیدل شو، نو حکومت به د طالب په تور ځوروی، بندي کوی، ګونتانامو ته لېږی او تاوان به یې ورته رساوه، خو طالب ښه وکړل، درې رنګه بیرغ والا یې ټول معاف کړل، ایا دا ښه مو سترګو ته نه درېږي؟

درې رنګه بیرغ والا نارې وهي، چې دا زموږ ملي بیرغ ده، خو سپین بیرغ والا نارې وهي، چې دا محمدي بیرغ ده، ایا ملي کېدل لویه خبره ده او که محمدي کېدل؟

درې رنګه بیرغ والا کوچنک فکر لري، وای دا د افغانستان سمبول ده، خو طالب لوی فکر کوي؛ که دا سبا ملت د طالب سره لاس ورکړي، نو طالب به خپل سپین بیرغ پر اسلام آباد ودروي، چې امریکا د ۴۵ مملکتونو په مټ تښتېته وکړل، نو پاکستان څه شي ده، بیا به هغه وخت پاکستانیان وایي، چې مونږه درې رنګه بیرغ نه منو، خو که زموږ بیرغ سپین محمدي

وي، نو دوی به یې هم مني. اوس وو ایاستی، تر سپین بیرغ لاندې ګټې دي او که تر درې رنګه بیرغ؟

امریکا کافره ده، ستاسو اولادونه به بیا تاریخ کې لولي چې سپین بیرغ امریکا ته ماته ورکړل، که هغه وخت درې رنګه بیرغ وي او سپین بیرغ ورک وي، نو ایا دا به زموږ دعوه غلطه ثابته نه کړي؟ ایا خپل د فتحې سمبول چې امریکا به ځنې بېربېدل له ځانه سره و نه ساتو؟

## څونده لوی فکر وکړو؟

زمونږه ځوانان دا شل کاله داسې ساتل شوي، وه چې ژورو ژورو شیانو ته ئې فکر نه کاوه، یوازې به یې سطحي شیانو ته فکر کاوه. زه د بېلګې په توګه یوازې مثالونه ړدم: په تېره اداره کې روزانه رشوت و اته میلیونه ډالر ته رسېدلی وو، په یو یا دوه لکه ډالر بنه مکتب جوړېدای شوای، خو موږ فساد کانټرول نه کړای شوای.
په کندهار او ننګرهار کې پر هر بیرغ یو لک ډالر مصرف شول، ایا په یو یو لک ډالر موږ مکتب نه شوای جوړولای؟ منم چې بیرغ اړین ده، خو ایا زما د وطن د ماشومانو تر ایندې هم اړینه ده؟
درې زره اته سوه لکه افغانۍ (۳۸۰۰۰۰۰۰) یوازې د سلمې کلیزې په لمانځلو کې مصرف شوې. ایا ویلای شی، چې په دې موږ څومره سولرې برېښنا جوړوای شوای؟ څومره مکتبونه په جوړېدای شوای؟ څومره عامه ذهنیتونه په رغېدای شوای؟

**ستونزه څه ده؟ موږ بیده ساتل شوي وو، مونږه داسې روزل شوي یو، چې یوازې پر کوچنې شیونو تمرکز کوو. لوی فکر نه کړو، لس کاله و شل کاله بعد ته نه ګورو. همدا اوس مونږه نارې وهو، چې طالبان ولې دا نه کوي؟ ولې ها نه کوي؟ ولې حکومت نه اعلانوي؟ زما اغا، زما ګرانه، طالبان خپل قدمونه ډېر پاخه او محکم ږدي، تر څو بیا لس کاله بعد ته په ستونزه که و نه اوسې.**

## د طالبانو لباس او مقررې

دې وروستيو کې د طالبانو پر لباس او مقرريو باندې سختې نيوکې وشوې. خو الحمدلله د طالبانو نظام د تېر نظام په څېر له فيسبوک څخه نه ده جوړ، چې فيسبوک کې به ډنډوره شول، نو حکومت به هم پرېکړه پر هغه اساس وکړل.

**معززو دوستانو !**

طالبان په خپله خوښه راغلي، نه مونږه رايه ورکړې او نه مو ورتا کمپاين کړی ده. په خپله خوښه راغلی دي، چې څه کوي، هغه دې وکړي.

کوم رنګ لباس انتخابوي، څوک مقرره وي، کوم قانون پلی کوي، خپله يې خوښه خپل، يې اختيار. فقط دې زموږ شخصي حريم ته نه داخلېږي.

پوهېږم، چې د مخکني نظام زيات لباسونه پراته دي، خو فکر دې کړی دئ، دا هغه لباسونه وه، چې اغوستونکو به يې له طالب سره جنګ کاوه. ايا د طالب نفس اخلي؟ هيڅکله نه. ګورئ، طالبان تاسو نه دي مطالعه کړي. امريکايانو طالبان نه وه مطالعه کړي، نو سخت ماته يې وخوړه.

**د طالبانو په رأس کې شاوخوا ۲۰۰ يا ۲۲۰ کسان دي. ددې کسانو عمرونه تر ۵۰ کالو زيات دي. دې کسانو خپل ژوند ټول د اولس لپاره داولس په منځ کې تېر کړی ده؛ د خلکو پر زخمونو يې پټۍ لګولي، له خلکو سره يې ساده پياز او ډوډۍ خوړلي دي، ساده خلک دي، مخونو کې يې نور او سترګو کې يې حيا ده، نو دا خلک به څنګه درغلې وکړي؟ دا خو هغه خلک نه دي، چې په بدو حالاتو کې يې افغانستان پرېښودلی وو، په ښو حالاتو کې بيرته راغلل، فحشا، ناروا، رشوت او ميلې يې وکړې او بيرته لاړل. نه د اولس په منځ کې پاته سوي او نه يې حيا لرل، نه د اولس خواخوږي وه او نه يې په اولس خوابدېدل.**

**دا شاوخوا ۲۰۰ مشرانو زيات انقلابونه ليدلي دي، د وطن ښه او بد حالت يې ليدلی ده، ايا مونږه د پرون پيدا شوي او د نن ځوانان شوي به تر دوی ښه پوهيږو؟ نه هيڅکله نه.**

له ادمه تردې دمه غیرتمن خلک غیرتمن وي؛ هغوی سوپر طاقت امریکا په بغل کې وه لاپې یې وهلې، خو دې خلکو د سوپر طاقت په وړاندې جهاد اعلان کړی وو، جنګېدل او قرباني یې ورکولې.

**د مخکنیو چارواکو اولادونه په امریکا او انډیا کې ناست وه، د طالب مشرانو اولادونه په سنګر کې ناست وه. یوه مشهوره وینا ده، "که په جنګ کې د مشرانو اولادونه مړه کېدای، نو جنګونه به نه وای". خو دا خبره طالبانو غلطه ثابته کړل. خپله به هم جنګېدل او اولادونو به یې هم سنګرونه فتح کول.**

دا خبره یاد ساتئ، غیرتمن انسانان د خلکو په عزت سودا نه کوي، نه هم خپل اولس ته غلطي پالیسی جوړه وي.

نو بیا که دوی څوک مقرره وي، نو پرېږده، چې خلا ډکه کړي.

له مقرریو څخه د خلکو د شکایت اړوند فقط یوه بېلګه راوړم:

د لوړو زده کړو وزارت لپاره یې مولوي حقاني صاحب وټاکه، خلکو ناري کړې، چې انجینر تواب بالاکرزی دي وټاکل شي. خلک ړانده دي د تواب بالاکرزي او مولوي حقاني صاحب پرتله نه شي کولای.

له نن څخه دېرش کاله مخکې چې تواب بالاکرزی ماشوم شاګرد وو، هغه وخت مولوي حقاني صاحب په طب پوهنځی کې اسلامیات تدریسول، مولوي حقاني صاحب چې څومره غوښن کتابونه په عربي، اردو، دري او پښتو لیکلي، انجینر صاحب تواب بالاکرزي تر اوسه مطالعه کړي لا هم نه دي.

خدای ته وګورئ، لږ له عدالت او انصاف نه کار واخلئ.

## شیخ ملا هبة الله حفظه الله ژوندی دی او که یا؟

له تېرو څو کلونو څخه یو د درواغو اوازه ګډه شوې، چې شیخ ملا هبة الله حفظه الله وفات شوی ده. خو داسې نه ده. شیخ صاحب ژوندی ده او د طالبانو مشر دئ. دا اوازه اشرف غني او د هغه ملګرو ګډه کړل ترڅو د طالبانو صفونه خراب کړي، خو طالبانو ټولو د خپل مشر پر لاس بیعت کړی ده او هم یې ملاقات کړی ده.

یو وار یې اوازه ګډه کړل، چې ذبیح الله مجاهد نشته، بلکې دا یو درسته اداره ده. دوی د طالبانو پر ظرفیت اعتبار نه درلود. خو اوس ذبیح الله مجاهد را څرګند شو، د قلم او ژبې خاوند دی.

اوس به د امریکا پلویان او د تېر حکومت فاسد چارواکي د شیخ صاحب په راښکاره کېدو سره دا اوازه ګډه کړي، چې دا خپله شیخ صاحب نه دی. چې دوی تر اوسه د طالبانو ساده ویاندویان ذبیح الله مجاهد او قاري یوسف احمدي نه وه لیدلي، نو شیخ صاحب به یې چیرې لیدلی وي. کمزوري خلک به په اوازو پسې ځي او غښتلي خلک به د الله و دربار ته سر ټیټوي او د امیرالمؤمنین سره به بیعت کوي.

او بیا به د دوی پر اوازه باندې کمزوري، له ماغزونو خلاص او غلام خلک باور هم وکړي.

### د اسلامي سیاست ځنې ځانګړنې دي:

**نظام** به الهی وي، چارواکي به د الله په قانون فیصله کوي

**شورا** به وي، د هیواد ټولې چارې به د هوښیارو او پوهو خلکو سره په مشوره وي.

**اطاعت** به موجود وي، ټول به د الله او د هغه د رسول اطاعت کوي او بیا به د امیر اطاعت کوي.

## طالبان او ډيورنډ

د طالبانو تر راتګ مخکې حکومت ډنډوره جوړه کړل، چې طالبان د پاکستان له خوا را استول شوي خلک دي؛ ډيورنډ به په رسميت و پېژني. دا فقط د خلکو پر احساساتو راوستلو لپاره وشول، ترڅو د طالبانو غلط تصوير وړاندې کړي. زموږ خلک هم ويل غوږ دي سپي يوورړ، دوی د غوږ پر ځای په سپي پسې وځغستل.

د طالبانو په وخت کې د پاکستان او افغانستان ترمنځ خط يوازې په يو ساده ډبره باندې نښاني کړل شوی وو. پاکستان دونده نر نه وو، چې را وځکېږي، خو تېرو شلو کالو کې هم پر تورخم او هم پر بولدک باډر باندې پاکستانيان را وڅکېدل او ازغن تارېې کش کړ او پاخه تعميرونه يې واچول. که طالبانو سره خپل د اولس خلک ملګري شي، د هيواد جوړولو ته ملا وتړي. روسته به طالبان خامخا ټول ډيورنډ له پاکستانه الې.

چې امريکا او ۵۰ هيوادونه په تېښته شول، نو بيا يو غلام پاکستان څوک ده؟

### د هيواد جغرافيه ساتل د حاکم نظام مسؤليت دئ

هر نظام مکلف ده، چې د خپل هيواد جغرافيه وساتي، د هوا، وچې او اوبو ساتنه به کوي. طالبان به هم ان شاء الله همداسې کوي. د ټول هيواد ساتنه به کوي، په دې جغرافيه کې به د اوسېدونکو خلکو ساتنه کوي. حتی د دې خاورې هغه اوسېدونکې، چې له هيواده دباندې دي، د هغوی ساتنه به په هغه هيواد کې کوي. بيا به داسې نه کيږي، چې ايران کې زموږ افغانان خلک ژوندي سوځي.

### د ډيورنډ لپاره د لستوڼي مار څوک دئ؟

د منظور پښتين حرکت ښه په درز ودې ته کار کوي، چې ډيورنډ دې په رسميت و پېژندل شي. که څه هم په ظاهره خو د لر او بر پښتون او لوی افغانستان نارې وهي، خو دوی د جمهوريت تر شا ولاړ وه، ځکه جمهوريت دا کار خامخا کاوه. پر دوی باندې په دې لاندې دلايلو باور کول نه دي پکار:

- خپله مبارزه نه عملي کوي، ترڅو به يوازې چيغې وي؟
- د پښتونخوا ايالت سره د فاټا تړاو نه لغوه کول.
- تر اوسه د پاکستان تر اساسي قانون لاندې ژوند کول
- پاکستان ور پکښې خلک وژني، خو دوی لا تر اوسه د عدم تشدد پر لار روان دي. د پاکستان په وړاندې نرم دريځ لرل.

## له هیواده څوک او ولي تښتي؟

تاسو خلکو ته مه ګورئ، چې له هیواده تښتي. په تېرو شلو کالو کي دوه نیم لکه افغانان و اروپا ته په غیر قانوني توګه تښتېدلي دي. ایا د هغه لارو له سختیو څخه خبر یاست؟ له افغانستانه تر جرمني پوري په پښو سفر کوي، د موټرانو په ټولبکسونو کي پټ ساتل کیږي، یخ او ګرمي ګالي او له ۱۲زره څخه بیا تر شل زره ډالره پوري مصرف کوي. نو چې زموږ خلک په دونده سختی باندي له هیواده تښتېدل، نو اوس به په مفته نه تښتي؟

ایا و مو نه لیدل، چې بیخي ډېر خلک په اوبو کي د اروپا پر لاره غرق شول.

دغه لاندي خلک له هیواده تښتي او له طالبانو سره یې نه ده جوړه:

- چا چې خلکو ته تاوان رسولی وي؛ غصب یې کړی وي، یا قتل او یا هم بل ظلم
- څوک چې په فحشا او نورو جرمونو تورن وه
- څوک چې له دین څخه بېزاره وه
- چا چې امریکا باندي ایمان درلود او په خدای ایمان نه لري او بېریږي، چې رزق به مي ختم شي.
- څوک چې په فحشاء روږد وه
- هغوی چې حوزو ته به یې د خلکو اولادونه د لواطت لپاره په زوره
- هغوی چې د کور پر شاوخوا به یې ډېرین دیوالونه او پر ځان لس موټره امنیت را ګرځولی وو
- هغوی چې زرګونه ډالره به یې معاش اخیستی او اداري فساد به یې ښه پر طبیعت کوی
- هغوی چې کال کي به یو یا دوه واره د تاجکیستان او ډوبی په نایټ کلبو کي عیاشی ته تلل
- هغوی چې د کابل په هوټلونو کي به په شرابو مست پراته وه

## د طالبانو د نظام ریښې کښل څه تاوان لري؟

که اوس موږ ټول لاس په کار شو او د طالبانو د نظام ریښې وکاږو، نو تاوان به څوک کوي؟ معلومه ده، که مونږه د نظام ریښې وکاږو نو تاوان به یوازې او یوازې مونږه ته ورسیږي. ځکه مخکنی نظام خو بیا نه شي راتلای، له رئیس جمهور نه بیا تر حوزو قومندانانو پورې ټولو د خلکو اعتبار مات کړاو وتښتېدل.

ښه خبره ده، چې د همدې نظام لاسنیوی وکړو. مونږه ښه زراعت لرو او ښه معدنونه لرو. امن خو راغلی، غله هم ونیول شول یا نیول کیږي، نشه یې خلک بندیان شول یا به بندیان شي، ترڅو نشه پرېږدي، اداري فساد هم صفر شو. اوس به خلک ښه په ارامه کار وکړای شي.

زه پر الله تعالی ایمان لرم. دا زما عقیده ده، زما باور دئ چې د ټول هیواد علماء ورسره ملګري سوي دي، نو دا خامخا ښه نظام دی. او که یې موږ ملاتړ وکړو، نو دا به عثماني او عباسي خلافت شي.

**د فیسبوک او نورو ټولنیزو شبکو له کارکونکو څخه یوه غوښتنه**

**کوښښ وکړئ، چې څوک وحشت، بې اتفاقي، نفرت او غلط افکار خپروي، د هغې موضوع مطابق له دې کتاب څخه لیکنه ورته کمینټ کړئ او ورته میسج یې کړئ.**

# د طالبانو بیا راتګ

دخلکو اندېښنې، رازونه او حقیقتونه





مؤلف: مولوي غلام الله عمرو

چاپ کال: ۱۴۴۳ هـ ق